د پښتو ټولنې له نشراتو څخه ؛

نمبر ( ۷۶ )

# خان جهان لودی

مصنف

اکبرشاه خان نجیب آبادی

مترجم

عزیز الرحمن « سیفی »

د تالیف او ترجمې مدیر

[illegible]

د پښتو ټولنې له نشراتو څخه :

لمبر ( ١٦

# خان جهان لودی

مصنف

اکبرشاه خان نجیب آبادی

مترجم

عزیز الرحمن « سیفی »

دتالیف اوترجمی مدیر

١٣٣٦

دخان جهان خطاب د تغلقانو د دوري څخه شروع شوی د شاهجهان د حکومت اود وری پوری
رائج او باقی پاتی و که څه هم دا خطاب د مغلو د حکومت په دوره کښې د جګو خطابونو په ار کښې
شامل و لیکن سره د دې هم د وزیر اعظم یا نائب السلطنه مفهوم په دې خطاب کښې نه و یا تی او
وزیر اعظم به د خان خانان او امیر الامرا او وکیل السلطنت او نورو نومونو یادیده . جهانګیر
پیرخان د دولت خان ځوی ته د خان جهان خطاب ورکړ او د هندوستان په تاریخ کښې هم دا د جهانګیر
خان جهان د تولو څخه زیات مشهور او د خان جهان لودی په نوم معروف دی او دبل خان جهان
شهرت د دې جهانګیری خان جهان ګروته هم نشی رسیدلی او نه څه شهرتونه د دې شهرت یارنګی
کېدل کېږي . د تاریخ د علم د طالبانو په مجلس کښې چه د خان جهان نوری او کلمه یاد شی
نو د دغې کلمې څخه په دغه مجلس کښې پرته د جهانګیری خان جهان څخه بل خان جهان نشی
مراد ولی او نه د چا ذهن بل خوا ته انتقال کوی . لیکن سره د دې هم ډیر دا راز نا څرګند او نا واقفه
خلک هم پیدا کېږي چه سره د دغې شهرت هم څوک د خان جهان د تفصیلی حالاتو څخه خبر نه دی
او له دې کبله په ډیرو غلطیو مبتلا کېږي . نو له دې کبله زه غواړم چه نن زه مفترض چه د خان جهان
په ما باندې واجب دی دا کوم اوتر کومې اندازې چه ممکنه وی خپلو دوستانو ته د خان جهان لودی
اصلی تصویر ښکاره کړم .

په دې موجوده عصر او یا په بل عبارت زمونږ د زمانی څیړنو مورخینو د خان جهان لودی
په خصوص کښې دا خبره لیکلې ده چه دی یو مجهول النسب سړی و او په قومیت هم ډیر تیت و
په دې خبره د وی خپل حماقت ښکاره کړیدی او هم له دې کبله زه نن خپل د خان جهان لودی
معروض ګرځم او هم دا سبب دی چه زه په دې وخت کښې د تولو څخه وړاندې د خان جهان
په کورنی یو سرسری نظر غورځوم .

لودی قبیله په کوم وخت کښې چه سلطان د بغاړا د دوړ باره څخه جلا شوی او الپتګین
څوپتل چه په افغانستان کښې یو جلا خود مختار حکومت قائم کړی په دغه زمانه کښې د بحرین
دقرامطه و مبلغانو خپل کاروبار په افغانستان کښې شروع کړی و . په مصر باندې فاطمیانو یعنې
عبیدیانو قبضه کړی وه او په بغداد او د بغداد په عباسی خلفاء د دیلمی خاندان د استیلا لاندې راغلی و
او په دغه راز وخت کښې د سلیمان د غره او د افغانستان په قبایلو کښې د قرامطه و خیالاتو او اباحتی
مذهب او خیالاتو شیوع او رواج د کوم تعجب وړ خبره نه وه او نه دا خبره د تعجب وړ وه چه د سبکتګین
د ورځ په ورځ زیاتیدونکې طاقت څخه ویریدلی د لاهور هندو حکومت د جیپال لودی سره دوستانه
تعلقات پیدا کړی او په ملتان باندې یې دغه قبضه یو جائز کاروګڼه او د خپلو دغو چارو په اثر یې دی
د سبکتګین په مخالفت پورته کړ . او له دې څخه څو ورځې وړاندې د ملتان او منصوری اسلامی

ریاستونه دقرامطهؤ دشرارت په اثر برباد شوي وو او په ملتان کښي قرامطه وخپل تبلیغي مرکز جوړ کړی او دا سلسله ئې قائمه کړي ده چه دیوې خوا څخه به ئې هندوان اود بلې خوا څخه به ئې پښتانه د خپلو تأثیراتو لاندې راوستل ، حمید خان لودي چه دسلیمان د غره په سلسله تللی او ملتان ئې نیولی ؤ دغه سړی د یوې خوا څخه دقرامطه و او د بلې خوا څخه دلاهور دراجا جیپال دامید او هیلو ځای او غالباً دافغانستان داودي قام د ټولو څخه اولي شخص و چه دده نوم ته مؤرخانو دحکمرانانو او پاچاهانو په فهرست کښي ځای ورکړ ابوالفتح دملتان پاچا اود حمیدخان لودي لمسی دسلطان محمود غزنوي په لاس توبه وویستله اود قرامطهو الحادي عقائد او اعمال ئې پرېښودل او داهل سنت والجماعت په لیار روان شو لیکن دغو سیاسي مشکلاتو له کبله ددغې لودي خاندان حکومت ډیر ژر خاتمه ومونده کله چه هم ابوالفتح لودي د سلطان محمود غزنوي په قید خانه کښي مړشو لیکن سره ددې به هم سلطان دده اولاد او خپلو خپلوانو او قوم ته دقدر او مهربانۍ په سترگه کتل لکه چه ملک سلیمان خان لودي سلطان دخپلو امراو په ډله اوز مره [illegible] کښي شامل کړیوو او د هندوستان په جنگونو کښي به ئې له ده څخه ډیر لوی لوی کارونه اخیستل د سومنات په جنگ کښي ملک سلیمان خان لودي د( ۱۲ ) زرو سپرو سپه سالار اود سلطان خان دټولو څخه زیات معتمد جنرال ؤ ـ ده دری کاله د سلطان سره دسومنات په علاقه کښي ، دقدر وړ خدمتونه کړی وو .

دسلطان شهاب الدین غوري پهحمله کوونکو غرو لښکرو کښي چه دپښتنو قبائلو ډیر قبائلو خلک پکښي وو داودي قبیلې هم ډیر خلک او افراد دغو لښکرو کښي شامل وو او په غرو مجاهدینو کښي هم د لودي قبیلې افراد شامل وو چه دغلزیو بختیار سره دبرهم پترا نومي سینده څخه پوري وتلي او په آسام او تبت باندې ئې حمله کړي وه ، په ۷۳۹ ه کښي چه دستار گانون صوبه دار ملک بهرامخان مړشو نودده سپه سالار ملک فخرالدین خان لودي په ستار گانون باندې قبضه وکړه او خپل حکومت ئې شروع کړ ـ دلکهنو ئې حاکم قدر خان دده سره په مقابله پیل وکړ او دیو څو مقابلو نه وروسته قدر خان ووژل شو او فخرالدین خان په ټوله بنگاله قبضه وکړه ، (۱) هغه وخت چه په دې وخت کښي سلطان محمد تغلق دا وو ۷ کالو د قحط د مشکلاتو سره په مقابله مصروف او بوخت و او فی الحال د بنگالي خواته نه شو تللی ـ آخر په ۷٤۰ ه کښي تغلق د حاجي الیاس د غوښتنې سره سم بنگال ته ورسید او ملک فخرالدین ئې ونیو او مړ ئې کړ او د هغه پرځای حاجي الیاس ئې د بنگال حاکم مقرر کړ او بیرته راغی ، دملک فخرالدین زوی مظفر خان لودي چه د ملتان دنومړي حاکم حمید خان لودي دنسل څخه و دملک فخرالدین دټولو

او ددولت خان اول په وژلو کامیاب شو او دخضر خان او دده داولادی دحکومت په دوره کښی ملک شاه لودی چه داسلام خان خطاب ئی دراود ډیره ترقی وکړه او هم د اسلام خان وراره بهلول خان لودی دهندوستان پاچاشو چه دده دلمسی ابراهیم خان لودی د حکومت په دوره کښی ددولت خان اول امسی اوپاکړوسی دوهم دولت خان دپنجاب صوبه د اروچه پابرته ئی په هندوستان دحملی کولو ترغیب اوتشویق ورکړی و دا دوهم دولت خان دسلطان سکندر لودی په زمانه کښی دپنجاب گورنر مقرر شوی و دده دنیکه دخوا اویو خیل ملک احمد لودی نغلور واړه ځامن دولت خان اونصرت خان اوبهارخان اوموسی خان لاهورته را غلل او دوهم دولت خان و دیته ډیر اومناسب ځایدادونه ورکړل اونصرت خان دملک احمد لودی ځوی ته ئی خپله لور ورکړه ·

دخان جهان لودی کورنی ·

دنصرت خان وروړ دولت خان ته یوه ورځ دپنجاب دصوبه دار دوهم دولت خان په مجلس کښی ځا آوازوکړ او دغه آوازته دولت خان صوبه دار او دولت خان د ملک احمد ځوی د واړه متوجه شو ددی کار په اثر دولت خان صوبه دار وویل چه دولت خا نه ور وره پیابه زه خپل نوم وگرځوم اویاته خپل نوم تبدیل کړه ده ورته په جواب کښی عرض وکړ چه ستادی ستا خپل نوم مبارک شی اوزما دپاره بل نوم تجویز کړه لکه چه دپنجاب صوبه دار ددولت خان دپاره شیرخان نوم وټاکه او دیته وروسته پدپه شیرخان نوم یادیده · هر کله چه د پنجاب د حاکم دولت خان لودی او دهندوستان دسلطان ابراهیم خان لودی دواړو عمرونو اوحکومت خاتمه ومونده نوپه دغه وخت کښی شیرخان اونصرت خان او بهادرخان دریواړه ورونه دپنجاب څخه روان شو او دبهار صوبی ته ئی ځانونه ورسول په دغه ځای کښی د پښتو حکومت لاتراوسه باقی و او هر کله چه په بهته کښی محمود خان دسلطان سکندر لودی ځوی او دسلطان ابراهیم لودی ورور پښتنو امراؤ په سلطنت انتخاب کړنوپه دغه وخت کښی دولت خان چه په شیرخان نوم یادیدئی شهرت دراود هم ددغی نوی سلطان په عسکر کښی شامل شو چه په دغه وخت کښی فرید خان چه په شیرخان لقب سره ئی شهرت دراود او وروسته دهندوستان شهنشاه شوی و د سلطان محمود خان لودی سره د جونپور خواته تللی و په دی سفر کښی دواړه شیرخان دیوبل سره آشنا اوله دی کبله چه دواړه په نامه کښی دیوبل سره شریک وو په خپل منځ کښی ډیر خواږه دوستان شو · د جونپور په جنگ کښی سلطان محمود لودی ماتی وکړه او دولت خان چه په شیرخان نوم ئی شهرت دراود ټوپل شوی بیرته پښتو ته راغی اود عسکریت څخه ئی لاس واخیست او په آبجا رت ئی پیل وکړ · او هر کله چه شیر شاه ھمایون اول کرت دعسکرو په څوا کښی مات کړنوپه دغه وخت کښی شیر خان ( دولت خان ) خپل

تجارت پریښود او شیرشاه څخه ورغی او شیرشاه پخوانی دوستی او پېژندګلوی د نظر لاندی نیولی ده سره ئی د مروت او عزت سلوک وکړ او ځای ئی د امراو په ډله کښې شامل کړ ، د دېنه وروسته د (مالوه) زمینداران او رئیسان شیرشاه ته پلای مضمون عرضونه وکړل چه مونږ ستا مطیع او تابع یو او مونږ ته یو سردار چی د پاره راولېږه چه مونږ د هغه سره یو ځای شو او د همایون ګمان هم له دی علاقی څخه ورباندی شیرشاه خپل مشرځوی قطب خان د مالوه خواته ولېږه او شیرخان ئی د یو اتالیق په ډول قطب خان سره کړ او له دی ګېله چه د مالوه امر او پخپله عریضی لېږلی وی او په دغو عریضو کښې ئې د هر راز جانفشانیو اقرار کړی و او همایون قطب خان سره ډیر عسکرونه لېږه او ده دا خیال درلود چه د مالوه ټول عسکر به د قطب خان خواته راټول او څوله شی لیکن ، هر کله چه قطب خان او شیرخان مالوه ته ورسېدل نو همایون د آګری څخه خپل ورور میرزا عسکری او میرزا هندال د غی خوا ته ولېږل او د مالوه امر او پد عهدی وکړه او قطب خان ئی بوالحی پرېښو د او میرزایانو سره یو ځای شو . هر کله چه قطب خان ته دده ملګرو وویل چه له دی ځای څخه وتښته نو ده ورته په ځواب کښې وویل چه زه به د شیرشاه نور ډیر ځامن لری او ځما د مرګ هیڅ پروا نه لری .

لیکن که زه د میرزایانو د مقابلی څخه وتښتم نو دا کار به زموږ د خاندان او کورنی عزت او وقار ته نقصان ورسوی . دا ئی وویل او د خپلو لږو ملګرو سره ئی د میرزایانو په مقابله جنګ وکړ او په ډیره مېړانه ووژل شو . هر کله چه قطب خان ووژل شو نو شیرخان ته ملګرو وویل چه اوس په میدان کښې څه مدی پاتی او خپل ځان له دی میدان څخه روغ او سلامت وباسه شیرخان ورته په ځواب کښې وویل چه زه به دا خپله سپینه ږیره شیرشاه ته څه ورښکاره شرمنده وویل او په ښېښانو بانډی ئی حمله وکړه او ډیر دښمنان ئی مړه او ټوپل کړل او پخپله هم وژل شو ، هر کله چه شیرشاه د قطب خان او شیرخان ددې واقعی څخه خبر شو او د شیرخان څلور واړه ځامن محمود خان او عمر خان او قاسم خان او کمال خان ئی د پلار څخه راوغوښتل او دی څلور واړو ته ئی لوی لوی جاګیرونه او طوغ او علم او نقاری ور کړی او د دوی ئی ډیر قدر وکړ او عمرخان ئی ځان څخه وساته اونور درېواړه ئی د خپلو جاګیرونو خواته ولېږل او هر کله چه د برهان پور د فاروقی پادشاه سپه سالار عالم خان لودی د شیرشاه په خدمت کښې حاضر شو نو شیرشاه د عالم خان لور د شیرخان ځوی عمرخان ته واده کړه او څو ورځی وروسته ئی عمرخان هم د خپل جاګیر خواته رخصت کړ ددې څلورو واړو ورونو په خصوص کښې ډیر ځله ملګو شیرشاه ته شکایتونه وکړل لیکن شیرشاه به د هر کرت او هر ځای د شکایت په جواب کښې وویل چه ترا وسه لا د ما اوه ځکه د شیرشاه خان

وفوښتل شو نو دمرزا سره دولتخان هم یو ځای په سفر روان شو او په لیار کښې د سروهي نومي ځای
په خوا کښې دراجپوتو یوی اوښي دلی دمرزا عزیز په قافله ناڅاپه حمله وکړه داوېره ناز که موقع
وه او په ظاهر کښې دغو خلکو څخه دځان ساتلو کومه چاره نه وه دولتخان په دغې وخت کښې لوی
کار داو کړچه دراجپوتو په مشرتي حمله وکړه که څه هم پخپله ژوبل او زخمي شو مگر دراجپوتو
مشرتي ووازه او د سردار دمرگ سره سم راجپوت وتښتیدل او په دي کار مرزا عزیز ډېر شکرونه
وایستل او په دغه وخت کښې ئې دولت خان ته دوه زره روپۍ او وآس دانعام په توگه ورکړل او
چه مرکز ته ورسید نو ددولت خان دغه کارنامه ئې باچاته واوروله باچا دولت خان ځان څخه
راوغوښت او دغه وخت پوری ددولت دمځ پر هار لاپه پوره دول سره نه و جوړ شوی باچا دده په دی
کار ډېر خوشحال شو او دخپلی ووزي څخه ئې طوس شړی او کمیله کوزه کړه او دولت خان
ته ئې ورکړه خوورځي وروسته مرزا عزیز کوکه د باچا څخه خپه شو او خپله وظیفه ئې پریښود له
اوپه کور کښې کښیناست لیکن دولتخان سره ددی هم دمرزا عزیز ملگرتیا پری نه ښوده له
مرزا عزیز عبدالرحیم ډېر خان ځوی چه مرزا خان خطاب ئې درلود او نر اوسه ورته د خان
خانان لقب نه وو ورکړ شوی خپل ځای ته راوغوښت او دولت خان ئې دلاس نه ونیو او مرزا خان ته
ئې وسپاره او دائې ورته وویل چه دا یو امانت دی چه زه ئې تا ته سپارم دده څخه هیڅ وخت غافل نشی
او تل ورسره دخپلو ورنه وغوندی سلوك کوه په دی خبره مرزا خان ډېره خوشحالی ښکاره کړه
او دولت خان ئې دخپل ځان سره بوته او دخپلو وروڼو څخه په ئې ورسره زیات ښه وضعیت کاوه او ډېر
پری گران و او هیڅ کله به ئې نه خپه کاوه په سنه ۹۸٤ھ کښې ددولتخان او مرزا عبدالرحیم
په منځ کښې تعلقات قایم شو په سنه ۹۸۵ھ اکبر شهباز خان کمبوه او مرزا خان په اودی پوراو
میوالد دحملی دپاره ولیږل راناپرتاب دبانسوالدی غرو نو ته وتښتید او په کو نبهلمیر او دی پور
شاهی لښکر و قبضه وکړه په دی جنگ کښې دولت خان ډېر جنگ او دقدر وډخه متونه وکړل او
دینه وروسته په سنه ۹۸۹ھ کښې اکبر میرزا عبدالرحیم دمظفر گجراتي په خلاف په گجرات باندی
دحملی دپاره ولیږه او په دی جنگ کښې هم دولت خان مرزا عبدالرحیم وساته او دا راز په میړانه
او زړور تیاتې حملی وکړی چه دجنگ ټول مشکلات ور باندی آسان شو او د گجرات ددی
کامیابی او فتحی په صله کښې مرزا عبدالرحیم ته دخان خانان خطاب او پنځ هزاری منصب ورکړ
شو او دینه وروسته دسنده د تسخیر په صله کښې دولتخان داسی میړانه او ځوانمردی ښکاره
کړه چه باچا ور ته دوه زاری منصب ور کړ او دسنده ( سنده ) د کامیابی او فتحی کاغذونه ددولت
خان دنوم په عنوان معنون کړ شو او په کوم وخت کښې چه شهزاده مراد دد کن په فتح مامور
شو نو خان خانان ئې دشهزاده سره داتالیق په حیث ولیږه او دولت خان هم دخان خانان سره ؤ او خان
خانان به بی ددولت خان دسلا او مصلحت څخه هیڅ کار نه کاوه او هر کله چه مراد مرشو نو باچا

دیوره علم او فضل خاوندان هم وو شهزاده دانیال دغه دیر اره وروته په خپلو مصاحبینو کښې داخل کړی، او ددوی هر راز رعایت به ئې کاوه او ددوی روزنې ته به ئې ډیره توجه کوله په سنه ۱۰۱۱ھ کښې د دولت خان ځوی محمد خان مړشو او له ده څخه یو خضر خان نومی ځوی پاتې شو او په دې وخت کښې د مسندعالي دولت خان صرف یو پیرخان نومی ځوی پاتې شو هم دغه پیرخان د دولت خان ځوی دی چه وروسته ورته دخان جهان لقب ور کړ شوی او تر ننه ورځې پورې دخان جهان لودی په لقب او خطاب شهرت لري او هم دغه شی ددی کتاب دلیکلو اصلي باعث او حقیقي موجب دی .

# خان جهان لودی

په سنه ۱۰۱۰ھ کښې پیرخان ددولت خان لودی ځوی دشهزاده دانیال په مصاحبت کښې شامل شو دپیر خان قابلیت او اهلیت ډیر زر دشهزاده توجه خانته جلب کړه او شهزاده ځوی د بیلاری نعم البدل وګاڼه او دده اختیارات او اقتدار ئې ډیر زیات کړه او ددولت خان ټولې چارې او وظائف ئې ده ته وسپارل او د ذی الحجې په اتمه ورځ سنه ۱۰۱۳ شهزاده دانیال په دکن کښې وفات شو .

او دده مرګ نه شپږ نیمې میاشتې وروسته دجمادی الثانی په دیارلسم ۱۳ ورځ سنه ۱۰۱٤ھ اکبر هم مړشو او شهزاده سلیم د اکبر د مرګ نه وروسته چه جهانګیر لقب ئې ور اوړ په تخت کښیناست په سنه ۱۰۱۳ھ کښې چه شهزاده دانیال ژوندی وه تو کر ته ئې پیر خان څخه ددې خبری پیغام او خبر ولیږه چه ته ما څخه راشه غالباً جهانګیر پیرخان اودی کیله خپل خان څخه راوغوښته او د شهزاده دانیال څخه ئې جلا کاوه چه هم داشهزاده دانیال دسلطنت د تخت په نیولو کښې دجهانګیر رقیب و او هم ده دجهانګیر رقابت کولی شو او پیرخان دغوا نمردی او قابلیت د شهرت نه خبر جهانګیر نه ښه لیدلی و لیکن که څه هم جهانګیر پیرخان ته هر راز اطمینانونه او طمعې ور کړې لیکن پیرخان دا خبره ونه منله او نه ئې کړه چه دشهزاده دانیال څخه جلا شی په کوم وخت کښې چه اکبر وفات شو نو په دغه وخت کښې خان خانان او پیرخان دواړه په برهان پور کښې وو او د دکن د معاملاتو په اصلاح او حل کولو کښې مصروف و میرزا عزیز او مان سنګه دواړه ددې خبرې مخالف وو چه جهانګیر په تخت باندې کښینی او دوی غوښتل چه دجهانګیر ځوی خسرو په تخت باندې کښینوی خسرو د مان سنګه خوریی او د میرزا عزیز داماد او زوم و که شهزاده دانیال ژوندی وی نو خان خانان به ددانیال دپاره دجهانګیر په مقابل کښې ډیر کوښښ کړی او دانیال به ئې په تخت باندې کښینولی او پیرخان به هم په دې کوښښ کښې برخه اخیستې وی لیکن پیرخان او خان خانان دواړه ددانیال دوفات له پېښو ادې تکلیف او مصیبت څخه خلاص کړی وو او په دې وخت کښې جهانګیر هم دخان خانان او پیرخان څخه کومه اندیښه او ویره نه درلوده

اوهم داسبب وچه جهانګیر په تخت باندی، د کښیناستلو سره سم خانخانان ته دد کن دمهماتو دا هتمام مسند اوخلعت ولیږه اوپیرخان ئی خپل ځان ښخه راوغوښت خان خانان دشاهی ایلچیانو سره، دعریضی په ډول یومکتوب پهدی مضمون ولیږه چهپدی وخت کښی پههیڅ صورت دپیرخان تګ لهدی ځای ښخه مناسب نهدی هر کله چه جهانګیر لادپخواښخه داخبره غوښتله چه پیرخان خپل ځان ښخه راوغواړی نودخان خانان دغی پیشنهاد لادجهانګیر دشوق اورتیز کړ اودوباره تاکیدی حکم ئی پهدی مضمون صادر کړ چه بلا توقفه پیرخان ماښخه راولیږه ددی حکم په رسیدلو پیرخان دبرهان پورښخه روان شو او هر کله چه پهلاهور کښی جهانګیر خسرو نیولی او حسن بیګ اونوروته ئی سزا ورکړی وهدی نجهانګیر پهخدمت کښی حاضر شو جهانګیر دپیرخان پهراتلو ډیرخوش شو اودصلابت خان خطاب اودوه هزاری منصب ئی ورتهور کړ اودیته وروسته جهانګیر د کابل پهاوری روانشو اوپیرخان اودی چهصلابت خان لقب ئی دراود همدخپل ځان سره کابل ته بوته پهدی سفر کښی پهورځ تر ورځه دجهانګیر توجه دصلابت خان په خصوص کښی زیاتیدله اوهر کله چهد کابل نهجهانګیر بیرته، لاهورته راغی نوصلابت خان ته ئی پنځ هزاری منصب اودخان جهان خطاب ور کړاوپه خپله فرزندی باندی ئی هم مفتخر کړ

لکه چه پاچا په خپله قلم دابیت ولیکه .

فرزند خاص شاه شد از قدرت الله                    خان جهان مرید جهانګیر باد شاه

و ددی بیت دلیکلونه وروسته ئی ملا احمد مهر کن را وغوښت او ورته ئی حکم ور کړ چه ابیت د ګوتی په ګمی کښی وکینه اوراتی وده اوهر کله چه ملا احمد ګوته تیاره کړی دپاچا حضورته راوړله نو پاچا په خپل لاس دغه ګوته خان جهان ته ور کړه هر کله چه حاسدینو به خان جهان دپاچا دغومره لطف اومرحمت اوعنایت ولیدلو موقعه ئی پیدا کړی اوپاچاته ئی په خصوصی ډول وویل پو پښتون ته دومره چګه مرتبه ور کول اوپه ځوېوالی نیول د عقل او حتیاط ښخه لری کاردی په جهانګیر دحاسدانو دغو خبرو ادولی او معکوس اثر وکړ اوبله ورځ ئی په دربار کښی خان جهان ته مخصوص خلعت او مخصوص آس او دجواهرو تسبیح مرصع خنجر او کمربند اوپه زرو جړا وشوی توره ور کړه او دقراول امراؤ او وزیرانو ښخه ئی په پوچګ ممتاز ځای کښیناوه اوله قراول ښخه ئی ورته چګه رتبه ور کړه .

هر کله چه جهانګیر دارالسلطنت آګری ته ورسید نوده دمرزا عزیز کوکه دو قراوارادی کړه اوقراول امراؤ دپاچا ددی ارادی تائید وکړ خان جهان پهدی مجلس کښی نهو شریک ی او شاید چهدی په دغی مجلس کښی چا قصداً نه و شریک کړی هر کله چه خان جهان چه ددی ارادی ښخه خبر شو نو بیتاله دپاچا حضورته حاضر شو اوپه ډیره آزادی سره ئی

ورنه په‌دی ډول عرض وکړ چه دخان اعظم مور (جیجی) ستا پلار ته‌تی ورکړیدی اودخان‌اعظم پلار شمس الدین محمد خان (انکه) په هغه وخت کښې چه سلطنت په خطر کښې و بیرم خان ته سخت شکست ورکړی دسلطنت بنیادئی ټینګ کړی واو هم دغو کار نامو حاسدان دی خبری ته مجبور او آماده کړل چه هغه په تابانډی مړ کړی اوسره ددی چه هغه ستاپه‌پلار خپل ځان فدا کړی دی - دمرزا عزیز کوکه کار نامې او داخبره چه اکبر به هغه ډیر ازونه وړل هرچا ته ښکاره ده مرزا عزیز ستا تره دی او ستا دعزت اوعظمت ځای دی او دهغه په اضطراری غلطی دومره سخت ګیری کول اوهغه سره دغه د بی مهری سلوك هیڅ کله ستا دشان سره مناسب نه‌وی په پاچاباندی‌دخان جهان ونا پوره اثر وکړ او هم په دغه وخت کښې ئې دمرزا عزیز چه خان اعظم لقب ئې دراود ټول قصور او سهوی معاف کړی او اوه هزاری منصب اوخلعت او آس ئې ورکړل :

که څه هم عبدالرحیم خان خانان دجهانګیر په تخت باندی د کښناستلو په موقع کښې د جهانګیر مخالف اومزاحم نه واونه دی په دار السلطنت آګره کښې په دغه وخت کښې موجود ؤ لیکن دجهانګیر په تخت باندی‌د کښیناستلو څخه لږی ورځی وړاندی‌دی ددغی کار مخالف و اوهم له دی کبله په دغه وخت کښې یعنی په تخت باندی د کښنا ستلو نه څه ورځی وروسته ۰ د جهانګیر انتقامی جذبی حرکت وکړ او ده دخان خانان پنځه‌زری منصب اودامارت ټول سامان اوټول جاګیر او نور شیان ضبط کړل او خیال ئې دراود چه دی نظر بند کړی او د دربار امراء هم دخان خانان مخالف او بد خواه وو او که چاده سره همدردی هم درله نو هغوی دومره جرئت نه دراود چه دخان خانان په خصوص کښې کومه دخیر خبره وکړی شی په‌دی نازك موقع کښې چه ځمکه او آسمان ټول دخان خانان مخالف لیدل کیدل خان جهان لودی خپل شرافت او انسانیت په‌دی ډول ښکاره کړ چه په آزادانه‌لهجه اوډول ئې په دربار کښې پاچاته په‌دی مضمون عرض وکړ چه خان خانان دسلطنتی کورنی پخوا نی نمك خور او روزل‌شوی دی او ده ذلیلول اورسوا کول او دته ضرر او تکلیف رسول د شاهانه ذات‌سره مناسب نه دی او دینه وروسته ئې دا شعر و لوست :

چوب را آب‌فرومی نه‌برد ازپی آنکه      شرم‌دارد زفرو بردن‌پرورده‌خویش

دخان جهان دی خبرو د هغچین او تازیانی کار ورکړ او د جهانګیر په زړه کښې ئې دعفوی او د ګذر ښکلی اوغوره او صاف برته ژوندی شو اودخان خانان‌منصب اوجا ګیر ئې بیرته ورکړل او ددکن په نظامت ئې مامور کړ ۰ دینه وروسته جهانګیر بیادوباره دخان خانان څخه له‌دی کبله خپه شو چه ده دغنبر جی حبشی سره دوستی پیدا کړی او دجوانه نومی ځای

او نورو ښاغلو څو ګلي او بانډې ئې په ټبله خوشه هنبرچي حبشي ته ور کړې وې ، خان خانان
آګرې ته وغوښتل شو او نزدې وه چې ده ته یوه دعبرت وړ سزا ور کړي داوارې هم خان جهان
دسره و دنګل او د خان خانان سفارش ئې و کړ اویه یو دا راز لطیف او عاقلانه ډول ئې
پاچا پوه کړ چې دهغه ټول غیظ او قهر ساړه شو او دخان جهان څخه ئې دخان خانان ضمانت
واخیست او بیرته ئې دو کن نظامت ته ولیږه ·

پورته مو دا خبره ذکر کړېده چې دخان جهان لودي پلار دریم دولت خان دمیرزا عزیز
او میرزا عبدالرحیم سره چې کوم ډول تعلقات او دوستي درلوده خان جهان هغوئي پسلاړ ددې
دواړو مصبانو او قدر دانانو حقوق په ښه ډول سره ادا کړل ، لیکن د اولو څخه د حیرت
مقام دادی چې په کوم وخت کښې جهانګیر دراجه مان سنګه داستیصال اراده و کړه نو په
دغه وخت کښې هیڅ ددې خبرې خیال او ګمان نه درلود چې کم یو عصري به دمان سنګه
په خصوص کښې دسفارش اقدام و کړي اوبا به په دې خصوص کښې څوله بیرته کړي مان سنګه
هغه سړی و چې ده غوښتل چې جهانګیر دتخت څخه محروم کړي او دا کښې ئې ګټه نه وروسته ئې
دې دپاره چې خسرو په تخت کښېنوي ډېر زیات کوښښونه و کړل او هم ده خان اعظم میرزا
عزیز کوکه ډولولي اوپه دغه خیال او کار کښې ئې دهغه سره ئې شریک کړی و جهانګیر
په خپل زړه کښې دمان سنګه څخه ډېر نفرت درلود اودې په راجپوتو پانډې ډېر بدګمان
شوی و دجهانګیر په دربار کښې هیڅوک داسې شخص نه و چې دهغه دمان سنګه په خصوص کښې
دخیر کومه خبره و کړي شي لیکن په دې موقع کښې هم خان جهان لودي وړاندې شو او
هغه پاچا ته دمان سنګه د کارنامو اوقاتا کارو هغه داستان واوراوه چې دا اثره ډیره کښې ئې
وکړ دی او دې مطلب ته ئې هم پاچا ملتفت کړ چې دپاچاه دپاره دسلطنت داستحکام او رونق
دپاره دعفوې نتیجه دانتقام څخه ډېره ښه او غوره ده لکه چې جهانګیر دمان سنګه د قتل داراده
څخه صرف نظر و کړ اوډېر مناسب ځاګیر دوډ کولو نه وروسته ئې ده ته کور ته خوا ته رخصت کړی او
دی په هم دغه ځای کښې مړ شو ، ګویا خان جهان او دی ددې خبرې ثبوت ورکړی وو چې
دهر شاهي معتوب سفارش و کړي او دهر معزز شخص عزت محفوظ وساتي او تل به ئې ددې خبرې
کوښښ کاوه او که خان جهان لودی نه وی نو جهانګیر به دغه ددیواله امراء یعنې خان
اعظم میرزا عزیز کوکه او عبدالرحیم خان خانان او راجه مان سنګه وژلي وو او دپاچا پاک
لاسونه به ددوی په وینو سره شوي اوده هندوستان په بدنامو پاچاپانو کښې به شامل شوی وو ،
او دشاه جهان ددوری هیڅ یو مؤرخ د خان جهان لودی هغه کارنامې او دجهانګیر په
دربار کښې دده هغه اقتدار چې ده ته حاصل ور کړي وو ده کښله مفصل نه دی لیکلي او نه ئې
لیکلای شو او دا ځکه چې دشاه جهان په وخت کښې خان جهان لودی دسلطنت دښمن او

باغي اوطاغي ګڼل کيږه لکه چه په ورانديې کرښو کښې به مونږ دغه زړه ژوبلوونکي
داستان بيان کړو ، دا پوره ذکر شوي اکثر معلومات او حالات د مخزن افغاني نومي هغه
کتاب څخه اخيستي شويدي چه دجهانګير په دوره کښې حبيب الله هروي تصنيف کړيدی ،
ددکن دسلطنت نظام شاهي او عادل شاهي تعلقات ورو خراب شوي وو جهانګير شهزاده پرويز
د کن خواته ولېږه ليکن د شهزاده پرويز دنه توانه وروسته ددې خبرې ضرورت محسوس شو چه
بايد دغې خواته يو زړور دست سپه سالار او تدبير خاوند ولېږل شي ، ددربار امراؤ د خان
جهان لودي اثر او اقتدار نه شو کتلی او تل به ئې ته د حسد په سترګو کتل او اوس دې
کتله دوي داخبره غوښتله چه په کومه وسيله خان جهان لودي د پاچا څخه بيل او جلا کړي
او هم ددې مشکوکي په اثر [illegible] دا مشوره او دا نظريه ښکاره کړه چه پرته د خان
جهان لودي بل دا راز څوک او د تدبير خاوند شخص نشته چه هغه ددکن مهمات او مشکلات
په ښه شان سره حل کړی شي اودا مشوره بالکل معقوله او په ځای وه او نه په دغه دربار کښې
دخان جهان لودي غوندې بل شخص وو جهانګير طوعاً او کرهاً دخپل ځان څخه دخان جهان
جلا کيدل غوره کړل او خان جهان د سنه ۱۰۲۹ ه په اوائلو کښې شهزاده پرويز څخه
برهان پور ته ورسيد او دد کن په مهماتو کښې شريک شو او دصفري په ۴ سنه ۱۰۲۹ه کښې
دملکاپور د جنګ په ميدان کښې خان جهان او دده وراره خضر خان دد کن دلښکرو سره
په مقابله کښې د خپلې پښتون ولي حق ادا کړ او خپله ځوانمردي او ميړانه ئې ښکاره کړه
ښکاره او [illegible] د دکن [illegible] ئې د [illegible] د سلطنت رعب او شان ښکاره
لښکر عبدالرحيم خان خانان د اتاليق په توګه د شهزاده سره و ليکن
تر اوسه دوي کوم بو کار نه و کړی شوی د خانجهان لودي په رسيدلو دد کن د مهماتو رنګه
او بڼه بدل شو او هر کله چه د نظام الملک لښکرو د خان جهان لودي بمقابل کښې شوواري
ماتي وکړه او په دغه وخت کښې د عنبر حبشي له خوا د روغې درخواست راغی که څه هم
خان جهان لودي او شهزاده پرويز دواړه د روغې طرفداران نه وو ليکن خان خانان او دلښکر
نور مشران روغې ته آماده شو او عنبر حبشي د بالا ګهاټ او جالنه [illegible] علاقې دوي ته
ور کړی او د [illegible] مغلوب په حيث ئې [illegible] وکړه ... ددې روغې نه وروسته شهزاده د خان خانان
او خان جهان سره برهان پور ته راغی او دا ځای په دغه وخت کښې دد کن د ناظم مرکز و
د رجب د مياشتې په اوم سنه ۱۰۲۹ ه کښې مهابت خان د پاچا له خوا راورسيد او خانخانان
ته ئې يدې مضمون شاهي حکم راورساوه چه في الحال خپل ټول وظائف خان جهان ته وسپاره
او آګرې ته راشه لکه چه عبدالرحيم خان خانان د شهزاده اتاليق او د دکن ټولې چارې
خان جهان ته وسپارلې او مهابت خان سره آګرې ته روان شو خان جهان تر يو پښتو مياشتو

وری د شهزاده اتالیق او د برار او دکن ناظم او حاکم و - او دربیع الاول په د وهمه
رخ سنه ۱۰۲۱ کښې ارادت خان چه خان اعظم خطاب ئې درلود د شهزاده اتالیق مقرر
و او برهان پور ته راغی او خان جهان لودی پخپل حال د سپه سالاری په عهده پاتې شو
شعبان په ۱۹ سنه ۱۰۲۱ھ کښې خان اعظم شهزاده پرویز د برهان پور څخه د خپل لښکر
ره دولت آباد ته روان کړ ، جهان گیر ددی خبری حکم ور کړی و چه د برسات د موسم
تیریدلو او د سهیل د ختلو نه وروسته باید د برهان پور لښکری د شمال او مشرق له خوا او
گجرات حاکم عبدالله خان فیروز د علی مردان خان او خان عالم سره د شمال او مغرب له
واه په دولت آباد حمله وکړی ددی حکم او فرمان سره سم خان اعظم د برهان پور څخه
بان شو لیکن پدغه وخت کښې د احمد نگر شاهی نظام لښکر ود خاندیس په صوبه حمله شروع
ی وه او له دی کبله د خاندیس د صوبې د حفاظت د پاره خان جهان مقرر شو خان جهان
دومکیری پخوا کښې د نظام شاهی لښکری ماتې کړی او د دکن د لښکرو ملا ئې ماته کړه
یه شلو ورځو کښې ئې د ننه د ننه د خاندیس او د خاندیس د سرحداتو څخه حمله راوړو نکی
ملول او د دوی خطره ئې بالکل په اطمینانی ډول سره ور که کړه او له دی ځای نه
شهزاده په اورچه ډېر ورو ورو د دولت آباد خواته وړاندی کیده روان شو او هغه سره
ځای شو او دغه ځای ته رسیدلو سره سم ئې دا خبر واوریده چه عنبر حبشی یعقوب خان
شلو زرو سورو سره د بالا گهاټ ته په خاندیس باندی د حملی کولو د پاره لیږلی دی او
ی خبردارویدلوسره سم خان جهان لودی پدی خیال د بالا گهاټ په لور روان شو چه د غه
م شاهی لښکری ماتې کړی او د هغی خوا څخه بیرته دولت آباد ته راشی او پدی چپاو
ی راجه مان سنگه او صورت سنگه هم خان جهان لودی سره ملګری وو - هر کله چه دی
گهاټ ته ورسید نو د کنیانو لښکرو ته ئې ماتې ور کړه او دهغه وروسته خان جهان لودی
ولت آباد خواته وخوزید په دولت آباد باندی د حملی کولو تاریخ د پخوانه ټاکل شوی و
باید په هغه ورځ عبدالله خان فیروز او خان جهان لودی د دواړو ډلو څخه حمله وکړی
جهان لودی د بالا گهاټ څخه فارغ شوی د دولت آباد خواته په یو دا راز وخت روان
و چه باید دی پدغه ټاکل شوی تاریخ دغه ځای نه ارومرو رسیدلی وی لیکن یوقدرتی
ده ته پیښ شو او هغه داو چه په لیار کښې په دوی باندی یو دا راز سخت باران شروع
چه لښکر دی خبری ته اړ او مجبور شو چه دوه دری ورځی حصار او په یو ځای کښې
شی او هر کله چه د باران څه قدرته دوی ته مهلت ور کړ نو دوی د دولت آباد خواته
شو - سره ددی چه عبدالله خان فیروز ته دا خبره معلومه وه چه خان جهان لودی تراوسه
آباد ته ندی را نږدی شوی او دوه دری ورځی ځنډ به وکړی لیکن سره ددی ده

بواځې پدې خیال چه د دولت آباد فتح ځما په نوم تمامه شي د خان جهان انتظار ئې ونه کړ او حمله ئې وکړه
او د دولت آباد نه دولس کروهه بېرته په بیشاپور نومې ځای کښې ئې د منبر جي حبشي
سره مقابله وشوه او عبدالله خان پدغه مقابله کښې ماتې وکړه او وتښتېد او علي مردانخان
او مرزا میرخوردار خان چه خان عالم خطاب ئې دراود دواړه سرداران ژوبل او گرفتار
کړی شو خان جهان لودی د دولت آباد څخه ۲۴ کروهه بېرته وچه ده د عبدالله خان د ماتې
او تښتېد او د دواړو سردارانو د ژوبلې او نیولو خبر واورېد او دغه حال ورته معلوم شو په
دغه ځای کښې خان اعظم هم د خپلو لښکرو سره د خان جهان سره یوځای شو او شهزاده ورو ورو
په ملکاپور نومې ځای کښې اقامت وکړی وهر کله چه شاهي لښکر د عبدالله خان د ماتې او
علي مردان خان او خان عالم د واقعاتو او ماتې او نیولو نه خبر شو نو ددوی د سردارانو
حوصلې ټیټې او خرابې شوې او ټولو داخبره ښه او مناسب وگڼله چه باید بېرته برهان پور ته
ولاړ شو ځکه چه د دښمن لښکر ډېر زیات او شاهي لښکر ته د جنگ د لوازمو درا رسولو کوم
پوره انتظام نشته دی، خان جهان لودی د بېرته تللو څخه بالکل انکار وکړ او
دوی ته ئې وویل چه تاسې ټول بېرته ولاړ شئ او زه بواځې د خپلو شخصي سړو سره دلته پاتې کېږم
او په دښمن حمله کوم د اختلاف ډېر وروزد شو او خبره دې حد ته ورسیده چه خان اعظم او مان سنگه
او نور سنگه بو بندیله او خواجه ابو الحسن او نور ټول سرداران د خان جهان لودی خبرې ته
برغلبل ئې ټولو داخبره غوښتله چه دی په هر راز ځلو بېرته تللو ته آماده او دی په دې خبره
رضا او اقرار کړي چه بېرته ولاړ شي مگر خان جهان بالکل دی کار ته آماده نشو په دې
اصرار او انکار لښې ډېرې ورځې تېرې شوې او د نظام شاهي لښکرو ځینې د ستي دوی
د لښکر ځای ته را نژدې شوې او خپل جسارت ئې دوی ته ښکاره کړ چه د څه دستي دوی
ماتې کړی او بېرته ئې وځغلوي ددې قضیې د فیصلې کولو او د خان جهان د بېرته بو تللو د پاره
مان سنگه او خواجه ابو الحسن او نورو سردارانو دا تدبیر غوره کړ چه باید یو سند تیار کړی شي
لکه چه په دې مضمون یو سند ولیکل شو چه خان جهان په هیڅ صورت بېرته تللو ته نه آماده
کېږي؛ مونږ د حکومت مفاد او شاهي مقاصد په نظر کښې نیولي دا خبره مصلحت گڼو چه له دې
ځای څخه بېرته وگرځو او دولت آباد خوا ته بالکل وړاندې ولاړ نشو مونږ ټول خان جهان
په دې خبره مجبوروو چه بېرته ولاړ شي، او که زمونږ دا نظر په دپاچا خوښه نه شوه نو مونږ به
د شاهي عتاب مورد او مستحق یواځې خان جهان ددې خبرې او مسئولیت سره کوم ربط او علاقه
نه لري مونږ دا کاغذ خان جهان ته د سند په ډول ورکوو هر کله چه په دغه سند ټولو
امضاگانې وکړې او مکمل شو او دغه سند خان جهان ته وړاندې کړی شو نو دی بېرته تللو ته

نیاز اومانه شو لیکن تراوسه لادوی روان شوی نه وو چه دملکا پوره دشهزاده کاغذ په دی مضمون را ورسیده چه داحمد نگر نظام شاهی حکومت دبیجاپور عادل شاهی حکومت په ذریعه دروغی درخواست کړیدی او دبیجاپور دسفارت نه مونږ شخه را رسیدلی دی . په عذر ضی دول جنګ معطل کړی اواول سرداران او امراء د خپلو لښکرو سره ملکا پور ته پور ته دی دپاره راشی چه دروغی په شا اوخوا کښی مشوره وکړو لکه چه آوز ملکا پور ته ور سیدلی او صلح نامه ترتیب شوه .

هر کله چه په ملکاپور کښی صلح نامه لیکل کیدله اوتکمیل ته رسیدله په شلم دمحرم سنه ۱۰۲۰ ه کښی حبیب الله هروی دخان جهان لودی ملازم د مخزن افغانی نومی کتاب په لیکلو پیل وکړه اوپه اسم دمحرم سنه ۱۰۲۱ کښی په برهان پور کښی ئی دا کتاب خلاص او ختم کړ. دصلح نامی دتحریر او تکمیل نه وروسته شهزاده پرویز د ملکا پور شخه روان شو او دمحرم دمیاشتی په آخر سنه ۱۰۲۰ ه کښی دامرا وسره برهان پور ته ورسید او دربیع الاول د میاشتی سنه ۱۰۲۱ ه پوری خان جهان لودی په برهان پور کښی دشهزاده پرویز سره وو او دربیع الاول په دوهم تاریخ سنه ۱۰۲۱ دشاهی حکم سره سم خان جهان لودی دبرار دصوبی گورنر مقرر شو او دبرهان پوره دایلچ خواته روان شو جهانګیر دبرار د ګورنری فرمان په خپل قلم لیکلی او دخلعت اوتوری سره ئی ده ته لیږلی و په دغو وختو کښی د برار صوبه په سرحدی صوبه وه او ددی صوبی دحکومت دپاره ډیر هوښیار او معتمد شخص پکاروه اوهم په دی کال دشعبان په میاشت کښی دجمعی په شپه په ایلچپور کښی خان جهان په خوب کښی د حضرت صلی الله علیه وسلم زیارت وکړ خان جهان چه سهار د خوب نه را ویښ شو نو ددی خوب شحا لتیا په اثر ئی خپل ټول مال اوشته په غریبا و وویشه او په ایلچپور کښی خان جهان دذالحجی ۱۰۲۲ پوری پاتی شو او ددی سرحدی صوبی انتظام ئی په ډیر ښه شان سره وکړ دالته په ده شخه ډیر علما او صلحا اوصوفیان راټول وو او په دی ځای کښی به ده دعلما وو ختونو ډیره برخه دعالمانو او ښو خلکو په مجلس او مصاحبت کښی تیرېدله په ایلچپور کښی دجهانګیر شاه چه په خپل قلم لیکلی وه خان جهان شخه را ورسیده چه دغه الفاظ دا وو .

فرزند سعادت مند صاحب اقبال گوهر درج دولت واجلال منظور انظار مرحمت بالاقتدار خان جهان باستفاضهٔ انوار خاطر داشتن آرای منظور وملحوظ بوده خاطر اشرف اقدس مارا نگران خود شناسد وچون مهمات دکن عمدة الملک رکن السلطنت خان‌خانان سپهسالار وابسته بالفعل مهمی که باعث توقف آن فرزند باشد در میان نیست باید که خود را متوجه درگاه سازد و اگر درین باب تعطیل نماید بعد ازین بطلب او چیزی نوشته

نخواهدشد - » ددې شاهي شقې په رسېدلو بېګوان داس دسلطنت وکېل چه په ایلچپور کښې ؤ خان جهان ته ئې ددې خبرې مشوره ورکړه چه باید ته اروموږ په دې خصوص کښې دشاهزاده پرویز او خان خانان سره مصلحت وکړې ددې ویناپه اثر خان جهان برهان پورته اطلاع ورکړه اوشاهزاده پهدې کیفیت خبر کړ او ددې اطلاع او مصلحت په جواب کښې شاهزاده في الحال خان جهان ته وایکل چه ته ایلچپور بالکل پرې نږدې اوزه به باچاته ستاپه خصوص کښې ولیکم چه په دې موقع کښې دایلچپور څخه دخان جهان تلل په هیڅ صورت مناسب نه دي . شاهي دربار ته دشاهزاده ددغې خط رسېدلو او دخان جهان باچاڅخه نهورتللو حاسدانو ته دخبرو جوړ ولو موقع ورکړه او هغو راز راز دروغ شکنا پتونه جوړ او دباچاپه زړه او دماغ کښې ئې دا خبره کېنولـه چه خان جهان پخپلـه داخبره نه غواړي چه دربارته راشي او دا ځکه چه هغه دد کن دشاهانو سره دوستانه تعلقات قائم کړ یدي دي پروپاګنداو خبرو په باچا دومره اثرو کړ چه باچا خان جهان دبرار دصوبه دارۍ څخه دګجرات حکومت ته تبدیل کړ او دتبدیلۍ په فرمان کښې ئې ورته ولیکل چه دبرار دصوبې څخه دګجرات صوبه ته ده او په دغه ځاي کښې دګوا او بیجل قامهغومتمرد ینوچه پهغرونو کښې ئې ځاي نیولی دي اوسر کشي اوپی لیاري توب ئې اختیار کړیدی ستاپه ورتللو به دهغوپه بنه شان سره علاج او چاره وشي ، لکه چه خان جهان د ایلچپور څخه روان شو اول برهان پورته دشاهزاده وابدلو دیاره ولاړ اوهدغې ځاي څخه ګجرات تهوخوځېده .

دشاهزاده خان جهان سره دومره مینه پیداشوېوه چه شاهزاده په هیڅ صورت دا خبره نه غوښتله چهخان جهان لوري لهده څخه بېل او جلاه شي،هر کله چه خان جهان ګجرات ته ورسېد نوپه تهانسیر نومې قلاه کښې ئې ځاي ونیواو په شوور څو کښې دغهصوبه دهرراز فتنو څخهپا که شوه، هر کله چه په ګجرات کښې دخان جهان څخهبو بیم کال تېر شونو بیاو روسته شاهزاده پرویز دباچا حضورته یوه عریضه په دې مضمون ولیږله چه اوس په ګجرات کښې دخا جهان پاتې کېدلوته ضرورت نشته دې اوزه دا غواړم چه خان جهان ته ددې خبرې اجازه ورکړې چه هغه ماسره په برهان پور کښې وي - جهانګیر د شاهزاده دا عریضه منظوره کړه اوخان جهان دشعبان په ۲۷ سنه ۱۰۲۳ دتهانسیر دقلا څخه روان شواو درمضان په اوړي ورځ برهان پورته دشاهزاده څخه ورسېد هر کله چه په برهان پور کښې دخان جهان شاهزاده سره نه میاشتې تېرې شوې نونور جهان بېګم جهانګیر په دې خبره مجبور کړچه خان جهان دبرهان پور څخه دارالسلطنت ته راوغواړي لکه چه ددغې فرمایش په اثر جهانګیر بیادو باره مکتوب ولیکه او په دغه مکتوب کښې ئې ده سره دخپل ملاقات شوق ښکاره کړ اوهغان څخه ئې راوغوښت په دې ځل کښې دشاهزاده پرویز قول ته پیروۍ نه او

کوښښونه بیکاره اوی نتیجې ثابت شو او د جهانګیر له خوا دخان جهان ذراعو ښتلو په خصوص کښې مسلسل فرامین را ورسېدل او په ٤ دجمادی الثانی ۱۰۳٤ ه خان جهان دبرهان پور څخه داجمیر خوا ته چه جهانګیر هم په دغې ځای کښې و روان شو او شاهزاده پرویز دخان جهان لودی سره په ډېر ښکلی ابونکو په کوستر ګوداع وکړه هر کله چه خان جهان اجمیر ته دوه دری منزله نژدی شو نو جهانګیر دده داستقبال دپاره شاهزاده خورم ( شاهجهان ) دده مخې ته ولېږه اود خپل یو مخصوص معتمد په لاس ئې ورته خلعت او خاصه آس هم ولېږه اوهر کله چه دی اجمیر ته یو منزل نژدی شو نو پاچا دده د استقبال دپاره دنور جهان پلار اعتماد الدوله او آصف خان وزیر اعظم او مهابت خان دربواړه ډېر لوی وزیران ولېږل ـ او په اجمیر کښې د خان جهان دپاره ډېره عالی خیمه اوسرا پرده نصب کړی شو او دنور جهان له خوا راز راز مېوی او شیرینی او دپاچا د مطبخ نه راز راز خوراکونه دغې خیمې ته ولېږل شو او درنګه په د رنګ او ساعت په ساعت به ئې کوم پوښتی دغې خیمې ته دتحفې په ډول لېږه دمازیګر دلما نه وروسته خان جهان دپاچا حضور ته حاضر شو او پاچا چه دلرې نه ولیدلو ورته ئې ووېل «دا! خان جهان خوش آمدی پیش بیا!» هر کله چه خان جهان شاهی تخت ته نژدی ورسید نو پاچا په ځنګلو ونیوه او خان جهان سره ئې معانقه وکړه اوورسره ځیری وخت اوده ته ئې ښکلی کړه اودیته وروسته ئې ور څخه په ډېره مینه اوخصوصی التفات دسفر دحالاتو او دخیریت پوښتنه وکړه خان جهان دپاچا حضور ته ډېری قیمتی تحفې او نذرانې وړاندی کړی او دغې بیا پاچا دی خپل ځان څخه دخصوصی صحبت دپاره راوغوښت او تر ډېره وخته پورې ئې ورسره په هره موضوع کښې خبری اتری وکړی ترڅو ځایه پورې کوم حالات چه د خان جهان لودی په خصوص کښې لیکل شویدی هغه اکثر دحبیب الله خان هروی د تصنیف دمخزن افغانی څخه اخیستل شویدی او حبیب الله خان هروی دخان جهان لودی د واقعاتو عینی شاهد او هغه راوی دی چه دغه واقعات ئې په خپلو سترګو لیدلی دی ، دحبیب الله خان هروی بیان خان جهان په اجمیر کښې خان جهان ته رسوی او په دی ځای دغه بیان ختمېږی او تردی ځایه پورې دخان جهان لودی زمانه دده دعروج اواقبال زمانه ګڼل کېږی او دیته وروسته دده ازوال شروع کېدونکی دی ·

## دخان جهان لودی د ژوندون نیمه وروستنی برخه

خان جهان لودی یو زړه ور او وفادار اوبسکر ... او یو چېره انسان ودسلطنت دربار په دغه وخت کښې دسازشونو مرکز او آصف خان وزیر اعظم داخبره ځو ښتله چه باید د جهانګیر نه وروسته ځما خسر اودا ماد شهزاده خورم ( شاهجهان ) په تخت کښېنی او دهغه

خور نور جهان بیگم چه دسلطنت په چارو کښې دخپاله او د جهانګیر په زړه ئې قبض
کړی وه داخبره غوښتله چه دجهانګیر نه وروسته شهزاده شهریار پاچا شي اوپخپله جهانګ
شاهزاده پرویز دولیعهدی دپاره ټاکلی و او خان جهان لودی او خان خانان او نور امراء
ددی خبری طرفدار ووه نور جهان بیگم خان جهان دبرهان پورنه دی دپاره راغوښتلی و چه
دی دخپلی تأثیر او اثر لاندی راولی اوپه کوم ذریعه دی دشهریار هوا خواه او معاون کړ
او آصف خان په دی کوښښ کښې و چه خان جهان دخورم طرفدار کړی هر کله چه
دجهانګیر دولیعهدی دد کن په معاملاتو خبری اتری اومذاکرات شروع شو اوپخپله خان جهان
لودی هم په دغه مجلس کښې حاضرو ددربار ټولو حاضرینو او دنور جهان او آصف خان
طرفدارانو په اتفاق سره دشاهزاده پرویز په شروع کړل اوټولو درباریانو د شهزاده پرویز
سره مخالفت ښکاره کړ اوپه دی خصوص کښې ئې دخان جهان څخه چه په ټولو کښې ښا
او ثقه شاهدو تائید وغوښت که خان جهان دنورو امراو غوندی یو چا لاك او زمانه ساز
شخص وی نو دومره خوشامدی کړی وی، چه هیڅ به ئې نه وویلی اود دغی کار په مقابل کښې
به ئې دخاموشی او چپ والی څخه کار اخیستی وی لیکن دی ددغی راز اشخاصو څخه نه و
اوپه ډیره آزادی او جرئت ئې دشاهزاده پرویز او خان خانان اوصاف او ښه والی بیان کړ
او پواځی دهغو بی ګناهی ئې ښکاره نه کړه بلکه دهغه اوصاف ئې په یو دا راز دلائلو
ښکاره او ثابت کړل چه بایډ هغوی دسټایني مستحق شی ددی بیان په مقابل کښې ټول غلی
شو - یوه ورځ شهزاده خورم ( شاهجهان ) دخصوصی دربار په بی تکلفه صحبت کښې
موقع و موندله او پاچا ته ئې وویل که زه دی دد کن ناظم مقرر کړم او د شهزاده پرویز
په ځای دی برهان پورته و لیږی لم نو زه به په یو ښکاره کښې دا حمد
نګر او بیجا پور دوارو سلطنتو نه فتح او په محروسه وممالکو کښې به ئې شامل کړم .
وزیر اعظم آصف ددغه تائید وکړ لیکن خان جهان لودی بی له کوم فکر او تأمل څخه
شهزاده خورم په دی مضمون مخاطب کړچه داخبره پاکرستادشان څخه مخالفه ده ته دخپل مشرورور
تحقیر کوی اوته کشرئې اوغواړی چه په مشر باندی فضیلت حاصل کړی اوته هیڅ کله کامیابی
نشی حاصلوی- که څه هم دخان جهان لودی په دی بی باکانه الفاظو جهانګیر خپه نشو اونه
ورباندی داالفاظ بدولګیدل لیکن دی الفاظو دشاهزاده خورم (شاهجهان)په زړه دغیشی اوخنجر
څخه کم کارونه کړ.پواځی خورم نه بلکه دی الفاظو دآصف خان وزیر اعظم په زړه کښې هم
ناسور جوړ کړ اودخان جهان لودی هم دا الفاظ ددهغه تباهی اوبربادی موجب شواونور جهان هم ددی
آزاد عسکری اوصاف وونکی سردار څخه مایوسه شوه ددی خبرو نتیجه داشوه چه ټولو
ددی خبری کوښش وکړچه خان جهان د ګجرات په حکومت اوشاهزاده پرویز د برهان پور څخه

کښې هیڅ کومه اندېښه پاتې نه شوه. خورم د گجرات صوبه‌دار خانجهان لودي شخه پیغام ورلېږه چه
ته سفارش وکړه او د پاچا شخه زما د خطا معافي وغواړه او مهابت خان هم د پاچا شخه مت ته وغښتو
تقصیرات یو درخواست ولېږه د دواړو تقصیرات او خطا گاني وبخښل شوې خورم (شاهجهان)
په دکن کښې پاتې شو او مهابت خان د بنگال شخه شاهي دربار ته راوغوښتل شو او خانجهان
لودي د دکن په نظامت ټاکل شوی او د گجرات نه برهان پور ته تبدیل کړی شو.

مهابت خان چه په بیا د نور جهان په حکم او اشاره کاروته کول او س ئې د آصف خان
د مقاصدو په تباتیدو پیل وکړ ده د بنگال شخه خپل ځان په زیر ښه شان سره مستعد کړی
او د راجپوتو تازه لښکر ئې نوی بهرتی کړی د خپل ځان سره را وست، او راغی او غالباً
د آصف خان په مشوره او سازش ئې جهانگیر بندی کړ او جهانگیر د مهابت خان د قید
شخه د خلاصیدلو نه وروسته لنږ موده وروسته یعنې د سنه ۱۰۳۷ د صفر په میاشت کښې
مړشو او شهریار دده په تخت کښیناست او وژل شو او د هندوستان حکومت شاهزاده خورم
ته په لاس ورغی چه د شاهجهان په نوم د هندوستان مشهور پاچا شو.

هرکله چه شاهجهان په تخت کښیناست نو د ټولو امراو منصبو ئې جگه کړل
آصف خان په خپل پخوانی حال د سلطنت وزیر اعظم او مدارالمهام پاتې شو او مهابت خان ته
د خان خانان خطاب ورکړ شو. د خان جهان لودي خبري پاچا او وزیرانو ټولو ته
یادی او معلومې وې لیکن في الحال ئې دده استیصال مناسب و نه گاڼه او اول ئې ددې
خبري انتظام وکړ چه پاید خان جهان د برهان پور شخه د (مالوه) نومی ځای په صوبه داری
تبدیل او مهابت خان خانان ددکن ناظم مقرر کړیشي او خان خانان ته حکم ورکړشو
چه ته دخپلي خوا او خپل طرف نه خپل خوی خان زمان برهان پور ته ولېږه خان جهان
د برهان پور شخه مالوه ته راغی او تر اوسه لا په اطمینان ناست نه ؤ چه جهجار سنگه
ونرسنگه دیو بندیله تر کښې علاوې بغاوت وکړ. دغه تر کوسی دپاره خان جهان شخه
حکم ورسید او څینې نور شاهي امراوم په دې مهم مامور شو. خان جهان په دې مهم کښې
اسکه شه ونسکه چه توقع کیدله خپل قابلیت او شجاعت ښکاره کړل او نو موړی بندیله
ئې مغلوب کړ او د شاهي حکم سره سم ئې دغه تمقبوضې لوپه بر خه دغه شخه بیله کړه او د
یو دروند تاوان داخیستلو نه، وروسته دوی دغه خطا معاف کړی شوه.

خان جهان لودي دغه کار نامه د شاهجهان د جلوس په اوری کال کښې ښکاره کړه
لیکن دی گاه ماسي هغه غوښه پرانه تسلي شوه گوره قوټه چه دده په نسبت دشاهجهان
په زړه کښې وه او آصف خان وزیر اعظم او دربار نور امرا هم په دې پوهې ودا واله
د شخه د کسات او انتقام په فکر کښې وو او ددې راز ښکاره او نور یالی شخص کوم

خطرناك مهم ته لېږل اود هغه دمصر كېسه خلاصول كوم ګران كار نه و اوپه دې تجويز
باچا له دې الزام او بدنامۍ څخه چه سړى نه پېژنى اويا دقدر داني حس نه لري ناګمان
مون پیاني كېده لېكن په دې تجويز كښې به دخان جهان اودي شهرت او عزت ته نوم
دمه رسېدلسه اوته په دې كار دپاچا او وزيرانو تولو دا انتقام جذبه سرېدله له دې كېنه
دوى خان جهان ته ډېر مهلت نه ور كاوه دې آګرې ته راوغوښتل شو او په دې پخپله
ى دپاره دپاچا حضور ته حاضر شو، چه دجهجار سنګه بندیله دمهم فراغت او كامیابى
ار كې د پاچا حضور ته عرض كړى پاچا ده سره په ظاهر كښې ډېر ښه وضعيت و كړ
كن ده ته ئې مالوه ته د بيرته تللو اجازه ور نه كړه اودى څو ورځې په آګره كښې
اتى شو او هره ورځ به دپاچا دربار ته حاضرېده په دغه وخت كښې د كوم صوبه دارېدو ته
ئې صوبه داري ته نه لېږل كوده جز وى او معمولى خبره نه وه او خان جهان هم له دې
ز عمل څخه لاد پخوانه وېرېده اوپه دغه وخت كښې دته دا خبره معلومه شوه چه دى به د
، اهل او عيال سره ګرفتار اوپه ډېر بد مرګ به ووژل شي ، ددې خبرې په اورېدلو
ن جهان ډېر پرېشان شو اوده دخپلې دروازې په مخكښې هغه پېټانه عسكريان چه ده سره وو
ه دارانو په حيث مقرر كړل او دربار ته تلل ئې پرېښودل دمنتخب الباب مصنف لېكى
دمخلص خان زوى دخان جهان دزوى سره دوستي درلوده دغه دولت خان جهان زوى ته په
له يوه ورځ وېلي وو چه خان جهان ته به ډېره زر سخته سزا وركړی شي هم له دې
ى څخه دخان جهان په زړه كښې وهم پيدا شو مګر دا دتوموړي مؤرخ يوه ساعت تېرى
شاهجهان يو غير مفيد و كالت دى اودا څكه چه خان جهان لودي نه كوم وحشى اوه
ته بې خبره سړي و او نه يو داسې دغه و بې تجربې سړى و چه د ګوچنيانو په خبرو اوټوكو
لېده - دى ډېر لوى سړي او اولمدرجه امير و چه دخان جهان اردپاچادخوى والى خطا و نه ئې
ى اودد كړو دخلورو صوبو نائب السلطنت كړى ئې كړى وه اود جهانګير په دربار كښې ئې
او امراو څخه زيات عزت او وقار درلود او دا هغه شخص و چه عبدالرحيم خانخانان
زا عزيز كوكه اومان سنګه غوندى مجرمان ئې پخپل سفارش د شاهزاده پرويزد سفارش
سته د شاهي عتاب څخه خلاص كړى وو او د جهانګير پخصوصي ، مشورو كښې ئې
، وزيرانو څخه زيات د خپلې رأى د اصابت او ښې او صحيح مشورې وركولو امتحان
ى و دى د نورى اوقلم د دوانړو خاوند يعنې برسېره دشجاعت اوتوريالى توب په مخصوص
ئې د پوره علم او فضل خاوند هم و ده ډول عمر د جنګ په ميدان او سپه سالارى او
تو او دپاچايانو په مجلسونو او نديمي كښې تېرشوى و اوده ناسته پاسته د شهزاده ګانو
يرانو سره وه او دى پخپله د صاف زړه او رښتينى ذهن او يو خ فول او اوز

او پدغه وخت کښي د فی‌الحال خواجه ابوالحسن ـ خدمت پرست خان چه په رضا د بهادر
میر آتش ئي شهرت درلود او سید مظفرخان بارهه او نصیرخان ـ او خواص خان بهټي او
رحمت خان بخشي او راجه بیټهلداس سه هزاري دراجه ګوپال داس ځوی ـ او راجه ژرتهی
راج او معتمد خان او خان زمان او رای رایان او راجه جي سنګه او نور څلی تنه مشهور
سرداران د ډیرشو څلوېښتو زرو لښکرو سره چه په ډیرو توپخانو مجهزو و دخان جهان په تعاقب
پسې ولیږل شول او هر کله چه شاهجهان دخان جهان دروانیدلو نه خبرشو نو دده د آګرې څخه دوتلو
نه روانیدلو نه یو نیم ساعت وروسته دغه لښکری په دده پسې د آګرې نه ولیږلی د یوې ځای کښې
دغو راوغوښتو وه خبره واده چه د لښکرو پښتنو دوه زره لښکر دتعاقب دپاره ځانته اوی اوی
سپه‌سالاران او تقریباً شلو پښت زره لښکر د ډیر و توپخانو او تجهیزاتو سره ولیږل شو نیمه شپه وه
او ټولو ځانګو آرام کړی و او په دغه وخت کښي دومره ډیر لښکر په دومره بیړه او زر مرتب کړل
او مسلح کړل او ولیږل دا شبهه پیدا کوی چه هم دغه شپه دخان جهان د نیولو او وژلو دپاره دپښتو
څخه تما کلي شوی وه او دغه ټول سرداران دخپلو خپلو لښکرو او توپخانو سره د پښتوانه
مستعد او تیار او دحکم منتظر وو او دوی خبرتیا انتظار ئي کاوه چه دحکم د رسیدلو سره سم
دخان جهان کور محاصره کړی .

اتفاقاً خان جهان لږ ساعت وړاندی لدې کار او درو کرام څخه خبرشو او د حیرت او
پریشانۍ په حالم کښي دخپل ننګ او ناموس دحفاظت او ساتنې دپاره په دې شان روان شو
چه ښځوته ئي چادرې ور پسر کړی او په اسونو ئي سپرې کړی او که دده د پښتو څخه
داراز خیال درلود چه وتښتی او یا له دې واقعې څخه څو ورځې وړاندی خبر شوی وی نو دده
دا څیره ګرانه نه وه چه دومره پیلان ئي تیار کړی وی چه خپلی زنانه او ښځی ئي ور باندی
سپرې کړی وی ـ او یائی دپښتو څخه کوم ځای دخپل ځان د حفاظت دپاره تا کلی او خپلی
ښځی ئي پښتو هغې ځای ته لیږلی وی لیکن دغو واقعاتو څخه چه وړاندی به ده ته پیښیږی د
هم دا څیره معلومیږی چه خان جهان لودی پخواله دې چه دځان دپاره کوم منزل مقصود او
د پناه ځای تعین کړی د آګرې څخه روان شوی و ـ او دده رعب او هیبت دشاهجهان په زړه
کښي ئي کومې اندازې ځای نیولی و ددې خبرې اندازه له دې خبرې څخه په ښه شان سره
کیدلی شی چه ده دغه دوه زره لښکر چه ښځي او کوچنیان او مال او اسباب او شاګردان په دغه
لښکر کښي شامل وو دومره یو خطرناک شی فرض کړ چه دده دغه ډیر زیات لښکر چه دشپې ئي
ددغه لږ لښکر په تعاقب پسې لیږلی و کافی و نه ګڼانه او سهار ئي دوا څیدلو او د خوب نه
راویښیدلو سره سم د آګرې نه مسلسل لښکر لیږل شروع کړل او دغه د شپې لیږل شوی لښکر
د مرستې او قوة الظهر دپاره ئي نور ډیر زیات او مجهز لښکر و لیږل دغه راز تصور او هیبت

دخان جهان دزړه ورتیا او توریالیتوب او عسکریت او سپه سالارۍ اولیاقت او مړتوب تر څوا ئې
په ښه شان سره کوڵی شي او دخان جهان دزړور تیا او میړانۍ اندازه له دې کار څخه هم
په ښه شان سره کیدلی شي چه دی د آ ګرې نه پټ ونه وت بلکه دډولونو او نقارو سره په
ښکاره ووت .

## د چمبل جنګ

د آګرې نه ۱۸ کروه په لیرې چه لمر څه قدرته را پورته شوی او د آسمان په غاړه ئې
رڼانګی خپرې کړې وی خان جهان دچمبل نومی سیند څخه دپورې وتلو دپاره تیرې راټولولې
چه په دغه وخت کښې دشاهجهان لښکرې دغه ځای ته ور ورسیدلې خان جهان په ډیره بیړه او
تلوار خپلې ښځې او کوچنیان دسیند بلې غاړې ته پورې ایستل او پخپله دسیند دې غاړه پاتې
او د حمله راوړونکو لښکرو سره ئې په مقابله پیل وکړ او دغه لږ بې سامانه لښکر د ډیر
زیات مجهز شاهي لښکرو سره په جنګ بوخت شو د یوې خوا د شاهجهان لښکرو ته مسلسل
قوة الظهر اونور لوازم را رسیدل او خان جهان دخپل ډیر لږ او بې سامانه لښکر سره دسیند
په غاړه په یو داراز ځای کښې دلښکرو سره مقابل او مقاومخ شو چه بالکل دیو خوا بل خوا
کیدلو ځای او موقع هم ورته پلاس نه ور تلله او دیوې خوا لښکر و او دبلې خوا سیند محاصره
کړې ؤ لیکن سره ددې هم هر کله چه دغه ډیر زیات لښکر ددغه ډیر لږو نښکیالو پښتنو د
لښکرو سره مقابله وکړه نو داخبره ورته ښکاره او معلومه شوه چه د چمبل په غاړه د ښکو
دیوال نه و بلکه نن دچمبل په غاړه دفولاد دیو داراز غر تشکیل شوی دی چه هر کله ورسره
دشاهي لښکرو سیلاب تصادم کوی نو یو داراز هیبت ناک آواز ور څخه پورته کیږی چه دګیر
چاپیره علاقو خلک ورته حیران پاتې وی . دمقابلې او تصادم نه وروسته دجنګ دمیدان څخه ډیر
سخت هیبت ناک آواز پورته شو او زړه ورتیا او ځوانمردۍ او میړانۍ په دغه ډګر کښې
دخپل مخ څخه پلو پورته کړ او دخپل جمال ننداره ئې خلکو ته وښوده د له شجاعت
دمړو مخونه مجهول او تیور په وینو کښې پراته او ډیر تیرندونکي ځوانان په خپله سینه پورې
مخ دوینو باران دځمکې مخ تک سور . کړ او دمقتولینو په وینو ککړو وجودونو په دغه سور ډګر
نقاشي کار شروع کړ او دسیند بلې غاړې ته ښځې او کوچنیان دمکتې په عالم کښې مبهوت او حیران
ولاړ او دخپلو مړونو اوورونو او ځامنو دمیړانی او توریالی توب ننداری کوی او د چمبل نومی
سیند روانو اوبو په خپل خوږ آواز په دې مضمون پوهنه ورله د توریالی ځوان دغه ځوان نوم دی
چه د جنګ په وخت کښې دتبتیدلو دپاره پښې نه لري .

ددې جنګ او شخړې نتیجه دا شوه چه دخان جهان دوه ځامن عظمت خان او حسین خان او پورته
شمس خان او شمس خان دوه وروڼه محمد خان او محمود خان پنځه سرداران او (۷۰) تنو پښتنو د مړو ډیر شمیر

حضور ته حاضر شو او هغو ته جنګ جنګ منصوبه ور کړ شو په دی خلکو کښی جادوراي د
(میو امرهټه نیکه) ساهو بهونسله دمیو امرهټه پلار اود جادوراني زوم اوجنګه یوشاعوراني
اخښی او پتنګک راو او تاوجی اونور مرهټیان په خصوصی ډول سره دذکر او یا دولو وړدی
چه دی خلکو ته شا هجهان ډیر ډیر جاګیرونه او جنګی منصبونه ورکړیدی ، هم
لهدی وخت څخهدمرهټیانو حوصلی جګی شوی اوددی خیانت په اثر دنظامشاهی حکومت پهستر کو
کښی هم ددوی اهمیت ډیرزیات شو، اوپه مسلمانانوسردارانو کښی شرزه خان اوسادات خان
هم څکه د ذکر وړ دی چه دوی هم دشا هجهان حضور ته حاضر شوی او جنګ منصبونه ئی
اخیستی دی اودشا هجهان دا تدبیر نه یوازی داحمد نګر دریاست ډیریشانی موجب شو بلکه
دی تدبیر خان جهان لودی ، هم ډیر متفکر او حیران او پریشان کړ

## درا جوری جنګ

دیورنه ذکر شوو غدارانو مرهټیانو دخیانت او د شاهجهان دترغیب په اثر، د مرهټیاو
جمهیتونو انګلیسانو خپل لمان سره . . . . شامل کړل دستدر دغاړی ډډی ته ئی داحمد
نګر ریاست ته ډیر مشکلات پیښ کړل او ددغو تدابیرو په اثر د احمد نګر ریاست ته ډیر
مشکلات پیدا شو ، لیکن خان جهان لودی، خواشخه شاهی لښکری دولاندی تللو څخه منع
کړی وی او دبلی خوانه ئی ددی خبری کوښښ هم کاوه چه دانګلیسانو او مرهټیانو دغه
د فتنی او د هم قلع کړی. کوم شاهی لښکر چه د خان جهان په مقابل کښی جنګیده
خان اعظم ددغی لښکر اوهم سپه سالار و او هم دالښکرو ټولونه لوی او ډیر اوقوی لښکرو
هر کله چه اعظم خان تر ډیرو ورځو پوری کوم کارونه کړیشو اودهغه ئی څه پروړ نه شو
نو شاهجهان داعظمخان پرځای آصفخان دوزیراعظم اوسپهسالار په حیث دیر هان پور شه
ولیږه ، هر کله چه اعظم خان په مجهول ګمانتون نامی ځای کښی د آصف د ماموریت
ومقرری څخه خبرشو نوډیر پښیمان اوشرمنده شو ، اوهم پهدی وخت کښی داخبرهم راورسیده
چه خان جهان لودی دمرهټیاو او انګلیسی باغیانو دمرکوني نه فارغ شوی اود خپل ډیرلږ
جمعیت اواهل اوعیال سره په داجوری نومی قصبه کښی مقیم اودشاهی لښکر له خوا ناڅاپه
طمئن اوبیغمهدی اعظمخان دخپلو هغو ناکامیو تلافی دپاره چه تر اوسه ورته پیښ شوی وی
ئې دغه موقع غنیمت وګڼله او دآصف درارسیدلو څخه وړاندی ئی دیو ډیر زیات او
مرار لښکر سره حمله وکړه اوخان جهان لودی ئی ګیر اومحاصره کړ . داعظم خان سره پهدی
حمله کښی بهادرخان د دریاخان لودی او راجه جی سنګه او راجه بیهارداس اوسپهدار خان
رخواص خان او سردارخان او مرحمتخان او اهتمام خان دتوپ خانی داروغه اوناهر داس

جهاله او راجه‌ټوپ سنګه او راجه پهار سنګه بندیله اوخان زمان او مرآسپ د مهابت خان
لمانی اوشیرخان او شاه نوازخان او چندر من بندیله او کیلوجی مرهټه او اجی رام مرهټه او
جګدیو مرهټه اوصف شکن خان اونور اوی اوی سرداران شریك اوموجود وو. خان جهان لودی
ددی ناڅاپی بلا او ناګهانی مصیبت په مقابل کښي هم خپل عزم او استقلال د لاسه ورنه کړ
اوځپلی کلای او کوچنیانی دخپل نور اسباب او اوازمو سره دلږدو غرونو دروته ولیږلی او پخپله
دخپل کوچنی جمعیت سره چه دده دوفادارانو دوستانو اوخپلوانو څخه تشکیل شوی و په مقابله
وخت شو او دشاهجهان لښکرو ته ئي بیا دوباره دخپل د جنګ ننداره ور وښوده . په دې
څخوه کښي خاصه او دذکر او یادوني وړ خبره داده چه بهادرخان د دریاخان ځوی د شاهي
مقدمة‌الجیش سردار او په اولو کښي زده ور سړی او بلی خوا ته دده پلاردریاخان اودی دخان جهان
اودی همدم دودوست اولوی سردار او دا دواړه پلار او ځوی دیو بل سره سخت د ښمنان او دیو بل
دوینو تږی وو دخان جهان اودی دیوه وراره نوم هم بهادر خان و اودی په زړه ور تیا او
میړانه کښي ددریاخان دځوی بهادرخان حریف اومقابل و . خان جهان لودی اودده ملګری
شاهي لښکر ته سړي کم او معاصره کړل چه په ظاهر کښي ددوی د ځلاصیدلو اوکومه خوا ته
دوتلو کوم یوصورت نه لیدل کیده اوشاهي لښکرو پرځیره په ځشو اوتورو اونیزو او خنجرونو
او بلو دشاهي لښکرو ځیره بر څه په توپکو هم مسلح وه په دغه ځای کښي دیر سخت جنګ او
خونړی مقابلي وشوی اوپه دغو مقابلو کښي بهادرخان ددریاخان ځوی دشاهجهان د لښکرو په
بیاوړی سردار دوه ځایه په ځشو او یوځای په توره ژوبل اوله دغو پرهارونو څخه مړ شو
اوده سره تاهر سنګه جهالا هم وژل شو دیو سخت جنګ نه وروسته په شاهي لښکرو کښي
دماتي علامي ښکاره شوی اوټول لښکر یوی خواته وا ټول اود یوی قوتلوی په خوا کښي
غونډ شو اوخان جهان په دغه وخت کښي چه دخپل حریف په مغلوبولو کښي مصروف و په میدان
قابض او بریالی کیده شاهي لښکر دخپلو ځانو دسنبا لولو نه وروسته بیا حمله وکړه او په دی
حمله کښي دمړو دلی اوډیری جوړشو . او دتورو دبرېښ او بریښنا دځلیدلو نه وروسته د غره
په دره کښي دوینو ځوړونه وبهیدل او دننګیالو پښتنو میړانی او زړه ورتیا د شاهجهاني لښکرو
عقل سرته واوست او په دی جنګ کښي دخان جهان وراره بهادرخان د جنګ په میدان کښي شهید شو،
اودوسمت اودښمن ته ئي دپښتون وني او میړانی درس ورښود او ځلکوته ئي دا خبره ښکاره
کړه چه پښتون ځلمی دمیړانی په ډګر کښي ځان څه رنګه فدا کوی : خافی خان لیکی چه
« هر کرا زخم کاری میرسید آرزوی زخم دیگر نموده قدم جرأت بقصد سربازی پیش
میگذاشتند تا آنکه بهادرخان از طرف خصم اززخم پای بپایی ازپا درآمد بهادر خان که از
بسیاری زخم افتاده بود چون رمقی باقی داشت بمدد غیرت ازجای خود برخاسته باز رو ئی به

لشکر بادشاهی دست به شمشیر برده حمله های مردانه نموده آخر به زخم گوله تفنگی افتاد راجپوتی آمد که سر اورا جدا سازد بهلور از اسپ بر آورده چنان افتاده بر راجپوت انداخت که گوش او بیاد داد را جپوت زخم خورده دست از وی نداشت سر اورا جدا ساخته با انگشتری دست ویران او نزد اعظم خان آورد ؛

په دغه وخت کښي خان جهان تر ډیره وخته پورې ځیل تور مقاومت په میدان کښي مناسب ونه ګانه او ځیل اهل او عیال خوانه ئې مخه وګړه او هغوی ئې دځیل ځان سره کوبل او بالکل ووت

په کوم ځیل ساتنې چه دده عیالونه سپاره وو مخه هم په دغه وخت کښي د ځیرو ځینو خانو شو اوله دې کبله ئې مجبوراً ځیل عیالونه په آسونو سپاره کړل ـ په دغه وخت کښي د شاهي لښکرو کښي دومره همت نه ؤ چه ساتې دده تعاقب وکړي ـ شاهي لښکر په دغو جنګو کښي پرالحي دومره کامیابي وکړ شوه چه دخان جهان ورارہ بهادر خان وژل شو که څه هم په دغه جنګونه کښي دشاهي لښکرو څخه هم ډیر خلک او لوی لوی سرداران وژل شوي وو ـ د بهادر خان ګوته اعظم خان شاهجهان ته برهان پور ته ولېږله او ددې ګوټي په نغی کښي دبهادر خان نوم کیښل شوی و او دا ګوته ددې خبرې دلیل او نښکاره علامه وه چه بهادرخان وژل شوی دی شاهجهان ددې ګوتې په لیدلو ډیر خوشحاله او ساززونه وکړل او په برهان پور کښي ددې کار تمامي په مناسبت جشن جوړ او په ټول ښار کښي ئې چراغان وکړ ـ که څه هم د احمد نګر نظام شاهي سلطنت دخان جهان لودي په ورتللو ډیر قوی شوی او هم دغه دخان جهان لودی دمیرانو او ټوری برکت و چه دغه ټوځي ولایت د شاهنشاهانو دیو لوی شهنشاه شاهجهان غونډی پاچا سره کامیابه مقابله وکړي شوه او ددې شهنشاه په مقابل کښي ئې ځیل رعب او وقار وساتلی شو ـ لیکن دمسلسلو جنګونو او مقابلونه وروسته دغه ریاست په تنګ شو او د احمد نګر ددربار روڼي ته میلان پیدا شو او دغه ریاست په دې خبره کښي غور او فکر کاوه چه په کوم ډول او تجویز خان جهان لودي شاهجهان ته وسپاري او خان جهان لودي ته هم ددې مذکوري خبر رسیدلو او هم له دې کبله هغه په دکن کښي هم ځیل ځان په خطر کښي ولید اوړا تجویز ئې وکړ چه پاتې دما لوي اورا جپوتانې او پنجاب په لار ځیل خان پېښور او دپا غستان غرونو ته ورسوي او په دغه ځای کښي دغه جوړه وکړي او د دغو ځایو دپښتنو قبائلو څخه هم د همدردی او مرستې هیله درلوده ـ هر کله چه خان جهان لودي د احمد نګر د ریاست د حدودو څخه ووت او د مالوې په حدود کښي داخل شو نو په دې کار د شاهجهان فکر او سوداس ډیر خراب شو او عبدالله خان او سید مظفر خان بارهه او سرفراز خان او درګا داس او

ما دهوسنګه او یکه تاز خان او ورو سردارانو ته ئې اشکري ور کړې او تول ئې په دې
خبره مامور کړل چه د دریا نومي سيند تول ګود رونه د کنترول لاندې ونيسي او په ډير
دقت سره د دغو ګودرونو محافظه وکړي او خان جهان لودي ته د دې خبرې موقع ورنه کړي
چه هغه د دریا سیند څخه پورې ووځي او د هر سردار سره دوه دوه ( ګرزبردار ) د دې
مقصد دپاره مقرر کړیشو چه د یو سردار څخه بل سردار ته د عوي په دې ترتیب د دغو ګودرونو
په محافظت دوه سوه ( ګرزبر داران ) مؤظف شو او له دې څخه دا خبره هم معلومیږي چه
د دغو ګودرونو دساتنې او اشکرو دا داري دپاره سل تنه سرداران مقرر او ټول ګل شوي وو
خان جهان لودي له دغې سیند څخه پورې وت او هيڅا دې دپورې وتلو څخه منع نه کړي
شو . خان جهان دهما لوی اورا جووتاني غروه او دا ګونه او ځغلګلونه او لودې ژوري
تریښو او ویستلو اوتر دیپال پور پورې ئې ځان ورساوه په ظاهر کښې خو احمدنګر او
دیپال پور په اشکال بو معلوم شي معلومیږي لیکن دهندوستان په نقشه کښې چه د فکر
او معلومات خاوندان احمدنګر او دیپال پور وګوري او دغه فاصله ځان ته معلومه کړي
او په دې خبره هم ځان پوه کړي چه په دې لیار کښې کوم کوم غرونه او سیندونه او ښارونه
او قصبې پرتې دي او بیا دا موضوع هم د نظر لاندې ونیسي چه په برهان پور کښې شاهجهان
دهندوستان د ټول بر اعظم بیا ټوله دپوره طاقت سره پروت او د خان جهان د هر حرکت او
هر کار په پوره طاقت سره تعقیبات کوي او د هغه وینو ته تږي ناست دی نو په دغه
وخت کښې په ورته دا خبره ښکاره او معلومه شي چه د خان جهان دزړه او بیا دولسو سوو
هغو پښتنو سره چه په موډو موډو د جنګونو او شپو ګډو وځغلي وو تر دیپال پور پورې
ورسیدل کوم معمولي کارونه و او که [illegible] نو پورې را رسیدلي وای
نوډا خبره بالکل ممکنه او ډیره یقیني وه چه د شیرشاه اعظم سلطنت پورته د پښتنو لاس ته ورغلی وای
او شاهجهان به هم لکه دخپل ورنیکه همایون غوندې پهابوان او هندوستان کښې وزدی وزدی مزلی
کړي وای لیکن پاک خدای ته په دغه خبره منظوره نه وه بلکه پاک خدای ته په دا خبره منظوره
وه چه د حضرت عالمګیر علیه الرحمه په ذریعه په هندوستان کښې اسلامي اثر قائم کړي . د پښتور
او پنجاب صوبه داران هم غافل نه وو او دې خبرې امکان نه درلود چه خان جهان لودي
د دیپال پور څخه وړاندې راشي او د پنجاب او یا سیند په میدانو کښې یا ګرفتار او یا قتل
نه کړیشي . د خان جهان د خبر داریدلو سره سم د جمالند هر ته [illegible] تر پښتوره پورې په
ټولو جوړو کښې حرکت او فعالیت پیدا شو او هم له دې کبله خان جهان لودي د دیپال پور

زه نشوایم چه د میړانی او شجاعت د هغه کل د زمری خان جهان د شجاعت د دی ورستو ساعتونو حال په خپل قلم ولیکم . خاقی خان د خان جهان سره بالکل هم نژدی نه اوری او د ی د خان جهان په بدو ویلو او خان جهان د ښکنځلو کولو څخه بالکل پاك او بیروانه کوی او تل د هغه د ذات او شاهی تذکره په ډیره خوشحالی سره کوی . زه په دی ځای کښی د خافی خان خپل الفاظ نقلوم .

دخان جهان چون شیر تیر خورده وزخم رسیده فرش کشان به نیرد رستمانه پرداخت .

بیت

خرامیده شیران یکشت آمدند　　　نهنگان ز دریا بدشت آمدند

در آن عرصه شوری برانگیختند　　　که در چشم مغز نمک ریختند

ز برنده یکپای شمشیر کین　　　لب زخم بر تیغ گفت آفرین

و آن از جان سیر آمده خون گرفته در عرصهٔ کار زار به هیچ وجه کوتاهی ننموده داد مردانگی میداد تا طناب عمرش به تیغ اجل بریده گشت و به برچهی ماد هو سنگه از پادر آمد و باوجود زخم دیگر که به پای رسیده باز بعد از افتادن خود داری نموده نشسته ثادم وایسین ازدوست ودشمن آفرین شنیده درجواب معاربهٔ حریف کوتاهی وپهلوخالی ننموده تا رسیدن سید مظفرخان بدستیاری حربهٔ جانستان بعالم بقاشتافت . گویند شاه قلی نام گرزبردار سراو را از تن جدا ساخت . .

په دی وروستی جنګ کښی هم خان جهان لودی د سید مظفرخان په نسبی او ( ۲۷ ) تنه نورشاهجهانی توریالی د خان څخه مړکښی او ورانه ی کړل او دی هم شهید شو . د زمری د زغ څخه ډیراوی پهلوانان وربنړی او ده پرو تور پالو دویری متیازی خطا کړنړی او په کوم وخت کښی چه زمری په پیل حمله کوی نو پیل په لکی کښی او خپله مدافعه کوی او په کوم وخت کښی زمری وغږ میږنړی نوموننږ په خپلوسترګو لیدلی دی چه د ډیرو خلکو په زړو کښی نږی ارتی شی لیکن موننږ داخداره هم کتلی ده چه پوه پس کمزوری سری زمری پوستکی وباسی او د هغه پری تونه او دپری تونو ویښتان په ډیر اطمینان سره په اورلګیت بانه ی سوزی او کوچنی کوچنی هلکان او اطفال د هغه لکی را کاږی او د هغه په سترګو کښی ګوتی منډی . هوښیار خلک له دی راز منظرو څخه عبرت اخلی او غافلان له دی راز چارو څخه په بیپروائی سره تیریږی .

